تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة في حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

تحریر و ترتیب

سید محمد ثواب

ابن سید اکاخیل باباصاحب

دوسرا حصہ

ناشر

مدرسۃ حدیقۃ الأحناف

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# مسئلة القرأة

# خلف الإمام

## از تشریحات النابغه

# مسئلة القراءة خلف الإمام :

## التحقيق في القراءة خلف الإمام :

أعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم : ﴿وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ سورة الاعراف آيت : ٢٠٤.

بله مسئله د قراءت خلف الامام ده اربعة ائمه کې ثلاثة ائمه مونځونه دوه قسمه دي څه جهري دي څه سري دي په جهري مونځونو چې د سحر ماښام او ماخوستن دي .

جمهور ائمه چې ثلاثة ائمه دي امام مالک ، امام احمد امام ابو حنيفة رَحِمَهُمُ اللَّهُ په دغه دري مونځونو کې مقتدي لپاره لوستل د فاتحې او د سورة مکروه ګڼي په کراهيت تحريمي سره .

او امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په جهري مونځونو کې هم مقتدي لره د فاتحې قائل دي خو هغه وايي چې په سکتاتو د امام کې دي ولوستلې شي چې مخالفت د فاستمعوا له وانصتوا سره رانه شي .

امام چې د دوه آيتونو مينځ کې لږ غلې کيږي نو دغه وخت کې دې وايي ولا الضالين سره چې کومه سکته کيږي نو دغه وخت کېدې وايي البته د جمهورو ثلاثه ائمه وو دا قول چې جهري مونځونو کې قرائت د فاتحې او د سورة مکروه دي .

په دې کې امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ يو څه تفرد لري هغه وايي چې تر کوم ځای پورې د امام آواز مقتديان اوري تر هغه ځای پورې کراهيت دي کومو مقتديانو ته چې د امام آواز نه رسيده هغوي فاتحه وروسته د امام پسې لوستلې شي دا د امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ قول دي .

امام مالک امام ابو حنيفة رَحِمَهُمَا اللَّهُ په جهري لمونځونو کې مقتدي لره د قرائت سخته منع کوي بالکليه يې قائل نه دي د امام آواز اوري او که نه اوري خو په جهري لمونځونو کې يې قائل نه دي .

امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ اصلي علت پسې تللې دي چې علت د منعې فاستمعوا له وانصتوا لعلکم ترحمون دا آيت دي نو استماع هغه وخت کې کيږي چې د امام قرائت څوک واوري

چې ځوک يې نه اوري هغه ته خطاب د فاستمعوا وانصتوا متوجه نه دي امام مالک او امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ علت د منعې د قرائت للمقتدي په صلاة جهري کې يواځې دا آيت نه ګرځوي بلکې هغه احاديث ګرځوي چې :

من كان له امام فقراءة الامام له قراءة .

نو هغه قرائت له ده نه کفايت کوي ضرورت نشته دي قراءت دده لره دا په جهري لمونځونو کې شو .

هر چې سري لمونځونه دي د ماسپښين او مازديګر نو په دې کې ثلاثة ائمه جمهور امام مالک امام احمد امام شافعي رَحِمَهُمُ اللَّهُ مقتدي لره د قراءت خلف الامام قائل دي او امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ قائل نه دي.

فرق څه شي دي دا دوه امامان چې امام احمد امام مالک رَحِمَهُمَا اللَّهُ دوي دواړه په سري لمونځونو کې مقتدي لره د فاتحې قائل دي خو استحباباً او امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په سري لمونځونو کې مقتدي لره د قرائت خلف الامام قائل دي او امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ قائل نه دي.

فرق څه شي دي دا دوه امامان چې امام احمد امام مالک رَحِمَهُمَا اللَّهُ دوي دواړه په سري لمونځونو کې مقتدي لره د فاتحې قائل دي خو استحباباً او امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په سري لمونځونو کې مقتدي لره د قرائت قائل دي وجوباً فرق ددوي په خپل مينځ کې هم راغې خو زمونږ مقابله کې خو جمهور شول چې د قرائت خلف الامام قول يې په سري لمونځونو کې وکړو او امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ دا قول نه کوي .

امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ سري او جهري لمونځونو کې د منعې د قرائت قائل دي چې مقتدي لره قرائت نشته خو دې کې څو مره فرق دي هغه وايي چې په جهري لمونځونو کې مقتدي لره قرائت مکروه دي په کراهيت تحريم سره او په سري لمونځونو کې مقتدي لره قرائت مکروه دي په کراهيت تنزيهي سره خلاف اولی که ماسپښين او مازديګر لمونځونو کې مقتدي فاتحه لولي خلاف الاولی دي عند الاحناف ناروا نه ده زه يې هم کله کله وايم خو بعضې کسان چې نژدې راسره ولاړ وي هغوي تفکر کې شي چې مولوي صاحب وهابي شو او که څنګه هغه لمونځ سري وي جهري نه وي په سري لمونځ کې مقتدي لره مقتدي فاتحه لوستلې شي جائزه ده احناف يې هم جائز ګڼي او دري واړه امامان يې هم جائز ګڼي .

د امام احمد او امام مالک سره د امامنا په سري لمونځونو کې دغه اختلاف دي چې امامنا افضلیت ترک ته ورکوي او امامین افضلیت قرائت له ورکوي په سري کې پاتې شو.

امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ هغه خو د وجوب قائل دی د فاتحې داد اربعة ائمه وو قول شو د اربعة ائمه نه سوا ددې زماني اهل حدیث چې دي هغوي یو پنځم مذهب جوړ کړې دي دوي خلکو ته وایي چې مونږ د څلورو مذهبونو نه خروج نه کوو خو ډیر مسائل دي چې خروج یې کړې دي یو ه ترې نه دغه جزیه ده هغوي خروج دا کړې دي چې امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ مقتدي له قول د وجوب د فاتحې وکړو نو فقط د فاتحې قول یې کړې دي د فاتحې نه زائد د قرائت قول یې نه دي کړي.

وهابیان مقتدي له د فاتحې د وجوب قائل دي او د قرائت د جواز قائل دي دوي وایي چې قرائت هم پسې کولې شي خو البته دا خبره په سري لمونځ کې کوي هر چې جهري لمونځ دي نو جهري کې دوي یو ځان ته مذهب جوړ کړو چې د فاتحې لوستل مقتدي له دا واجب دي خو عام قرائت به نه کوي په کې که سکتاتو کې کوي وه دې کړي ګنې نه دي کوي.

نو فرق راولي په مینځ د قرائت الفاتحه او د قرائت القرآن کې او په دې زمونږ ډیر احناف هم عوام علماء او بعضې علماء غیرِ محققین هم تیروځي هغوي هم دا وایي چې کوم ځای کې منع راغلې منع د قرائت راغلې ده او قرائت خو فاتحې ته نه ویل کیږي هغه خو سورة ته ویل کیږي.

ګورئ دا اصطلاح جدیده ده په زمانه د صحابه کرامو او د اولینو تابعینو کې قرائت د فاتحې د لوستلو نه جدا په بل څیز اطلاق نه کیده هغه وخت سره فلانې د قرائت نه منع کړې نو د فاتحې نه یې منع کړې ځکه دا مذهب د سره نه وه چې فاتحه لوله او قرائت مه کوه مذهبین همدغه جوړ شوې خبره په فاتحه کې روا نه ده چې فاتحه به لولي او که نه به یې لولي نو څه رایه د قرائت شوه او څه د ترک قرائت شوه.

دا اصطلاح وروسته فقهاء جوړه کړې ده چې یو قرائت القرآن دي فرض دي او بل قرائت الفاتحه ده واجب دي دا خو روستني اصطلاح ده په زمانه د صحابه کرامو کې دا اصطلاح نه وه قرائت او قرائت القرآن او قرائت خلف الامام د ټولو اطلاق په دغه فاتحې باندې کولو.

چونکې دا مسئله د ائمه وو مینځ کې اختلافي ده او جمهور په جهري کې له مونږ سره ده هر چې په جهر کې ده :

نهي القراءة في الجهرية وهو مذهب الجمهور.

منع د قرائت په جهري کې دا مذهب الجمهور دي.

## اول استدلال :

جماهير په دې کې د قرآن عظيم الشان له دې آيت نه کوي سورة اعراف آيت نمبر : ۲۰۴:

﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ کله چې لوستلې شي قرآن عظيم الشان.

فاستمعوا. غوږ کيږدي دې لره.

وانصتوا. چپ شي.

لعلكم ترحمون.

تفسير الدر المنثور جلد ٦ صفحه ٧١٩ باندې او ښکته د ډيرو صحابه کرامو تابعينو اقوال زه په دې ذکر کوم چې دا آيت کريمه نازل شوې په حق د قرائت خلف الامام باندې چې د دې آيت نزول نه وړاندې به په جهري مونځونو کې صحابه کرامو فاتحه لوستله آيت چې نازل شو منع شو له دې نه.

چا چې مخکې له دې نه قرائت خلف الامام کړې دي له دې سره هغه حکم ختم شو نو يو په دې کې قول د عبد الله بن مغفل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي چې هغه فرمايي چې آيت کريمه نازل دي په حق د قرائت خلف الامام او منع د هغې کې.

واخرج ابن ابي شيبة وابن ابي حاتم وابو الشيخ وابن مردوية عن عبد الله بن مغفل انه سئل.

له ده نه تپوس وشو.

اكُلُّ من سمع القرآن يقرأ وجب عليه الاستماع والانصات.

هر ځای کې چې قرآن کریم لوستل کیږي استماع انصات واجب دي .

قال لا . وایي نه هر ځای کې واجب نه دي .

انما نزلت هذه الآیة . په تحقیق سره نازل شوې دغه آیت :

﴿وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ في قراءة الامام اذا قرأ الإمام فاستمع له والصت .

ګوري دا واضح دلیل ددې دي چې دا ایات کریمه داخل الصلوة کې نازل دي غوږ کیښودل او انصات امام لره واجب دي ددې نه خارج بیا غوږ کیښودل مستحب دي قرآن عظیم الشان ته .

دا تاسو ته بیا د ختم په مسئله کې هم فائده درکوي دا روایت چې کله هغوي په تاسو اعتراض وکړي چې ختم ځکه ناروا دي چې دې کې ډیر کسان لګیا وي یو بل ته غوږ نه ږدي دا خو د فاستمعوا وانصتوا خلاف راځي .

نو هغه خو خارج د صلاة نه دي او خارج د صلاة نه استحباب دي ایت د هغې متعلق نازل شوې نه دي داخل د صلاة کې استماع او انصات لازم دي .

دارنګې عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه هغه هم دا فرمایي چې ددې آیت کریمه نزول نه بعد قرائت خلف الامام منع شوې دي او په خلکو یې غصه کړې ده چې څوک ددې د نزول نه بعد هم قرائت خلف الامام کوي .

تفسیر الدر المنثور جلد ٦ صفحه ٧١٩ :

واخرج عبد بن حمید وابن جریر وابن ابي حاتم وأبو الشیخ عن ابن مسعود أنه صلى بأصحابه فسمع ناساً .

ملګرو ته یې مونځ کوه وایي وریدل له خلکو نه .

یقرأون . چې څه یې لوستل .

خلفه . وروسته له ده نه .

فلما انصرف . چې دې راوګرځیدلو .

قال . وي فرمايل .

أما أن لكم أن تفهموا . اوس هم تاسو ته هغه وخت رانغې چې پوه شي .

أما أن لكم أن تعقلوا . اوس هم لا عقل نه كار نه اخلي .

﴿وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ كما امركم الله . څنګه يې چې امر درته كړې هغسې شي غلي شي او غوږ كيږدي .

دارنګې عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه رايه هم داده چې دا آيت كريمه داخل الصلاة په جهري كې د امام د قرائت د استماع متعلق نازل دي .

تفسير الدر المنثور جلد ٦ صفحه ٧٢١ :

واخرج ابو الشيخ عن ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال كانت بنوا اسرائيل اذا قرأت أئمتهم فجاوبوهم .

بني اسرائيل داسې وه كله به چې امام د هغوي تلاوت د خپل كتاب كوه نو وروسته مقتديان به يې هم پسې لګيا وه .

فكره الله ذلك لهذه الامة . رب كريم دې امت لپاره دا بده وګڼله چې دا د يهوديانو عمل دي چې امام لګيا وي او وروسته پسې مقتديان هم شونډې ښوروي او دا د عيسويانو عمل دي چې امام لګيا وي او مقتديان هم پسې لګيا وي نو بيا يې دا وفرمائيل :

﴿وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾

دا آيت نازل شو الله پاک د دې امت له يهودي او عيسوي سره فرق وكړه چې هغوي كې به مقتديان قرائت خلف الامام كوي خو دا امتيان به يې نه كوي .

دارنګې عبدالله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رئيس المفسرين رايه هم داده چې دا آيت د قرائت خلف الامام په رد كې نازل دي په جهري لمونځونو كې .

تفسير الدر المنثور جلد ٦ صفحه ٧١٨ :

واخرج ابن مردوية عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال صلى النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقرأ خلفه قوم .

وروسته ترې بعضې قوم څه لوستل نو نازل شو دا آيت :

﴿وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾.

دا كوم خلك چې دا جواب كوي چې مونږ يې په سكتاتو كې وايو يعنې امام چې غلې شي مونږ يې لولو او امام چې ولا الضالين ته غلې شي نو مونږ يې وايو نو د هغوي نه جواب دادی چې تاسو څومره هم په سكتاتو كې ووايي نو اول خو د نن زمانې امامان سكتې دومره كله كوي خو څه كه څوك يې وه هم كړي داسې او مقتدي يې په سكته كې هم ووايي نو جواب به د فاستمعوا نه راشي.

خو د انصتوا نه به څه جواب كوي بيا يعنې غوږ دي كيښنود څه د امام نه دي هم واوريدل او خپل دې هم ويلې خو بيا دې د انصتوا خلاف او كه رب كريم وايي چې شه او ته چې كيږي نه هغې سره څه كوي يوائې فاستمعوا امر خو نه دي د انصتوا امر هم متوجه دي.

دارنګې حضرت ابو هريره رضي الله عنه هغه هم فرمايي چې دا په حق د قرائت خلف الامام يعنې د مانځه متعلق نازل دي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا قول تفسير ابن جرير الطبري جلد ۱۰ صفحه ۶۶۳:

عن علي عن ابن عباس رضي الله عنه قوله: ﴿وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ يعني في الصلاة المفروضة.

دا امر د انصات او استماع چې دي دا په مانځه مفروضه كې دي خارج نه دي.

او روايت د حضرت ابو هريره رضي الله عنه تفسير الدر المنثور جلد ۶ صفحه ۷۱۸:

اخرج ابن جرير وابن ابي حاتم وابو الشيخ وابن مردوية وابن عساكر عن ابي هريرة رضي الله عنه في قوله: ﴿وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ قال نزلت في رفع الاصوات وهم خلف رسول الله في الصلاة.

دوي د نبي عليه السلام پسې وروسته وه آوازونه يې اوچتول داد هغې متعلق نازل شو.

امام مجاهد رحمه الله د هغه رايه هم داده چې دا په حق د قرائت خلف الامام او رد د هغې كې نازل دي.

تفسير ابن جرير الطبري جلد ۱۳ صفحه ۳۴۷:

حدثنا ابن وكيع قال حدثنا جرير وابن ادريس عن ليث عن مجاهد: ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ قال في الصلاة المكتوبة.

امر د استماع او د انصات فرضي مانځه متعلق دي دا جهري قيد مونږ ځکه لګوو چې دلته فاستمعوا راغلې دي که يواځې انصتوا وايي فاستمعوا نه وايي نو سري کې به هم بيا لازم واي.

دا يوه شبهه به ذهن ته راشي چې هر کله دا آيت په اجماع د مفسرينو باندې په حق د داخل الصلاة کې شو الا ما شاء الله نو امر د وجوب لپاره شو او د فرضيت د پاره شو نو په کار دا وه چې چا په کې قرائت کولې مونځ يې نه واي شوي تاسو مکروه ورته ولې وايې مکروه تحريمي خو بترك الواجب راځي بترك الفرض خو نه راځي په ترک د فرضو سره خو فساد د مانځه راځي د شوافعو او د وهابيانو مونځونه پرې فاسد کړې کنه.

نو جواب دا دی چې د بعضې مفسرينو رايه دلته داده چې حضرت ابو هريره رضي الله عنه هم پرې قول کړې دي چې دا آيت کريمه په حق د سماع د خطبې کې دي دا يو قول شوې دي چې د خطبې په سماع کې دا نازل دي چې د جمعې خطبه لوستلې کيږي نو فاستمعوا له وانصتوا د بعضې کمو مفسرينو دغه رايه ده.

او چا ويلې دي چې دا په مانځه کې سلام ته وعليك وويل په جهر باندې داد هغې متعلق نازل دي يا دا قول شوې دي چې کلامات د دې ايت د نزول نه مخکې په مانځه کې هغه کلام چې هغې کې خطاب دنيوي خلکو سره وي نو دا جائز وه.

مثلاً څوک به او پرنجيده او الحمد لله به يې وويل نو دوي به ورته داخل د مانځه کې يرحمك الله جائز ګڼل دا خطاب مع الناس دي.

چا به وويل السلام عليك دوي به وويل وعليك السلام دا جائز وه د آيت د نزول سره هغه ختم شو.

نو چې هر کله دا د کومو مفسرينو رايه په دې کې متعلق الخطبه او يا هغه خطابات داخل د مانځه کې کلامات د هغې په رد کې نازل دي دا اقوال شته دي.

نو آیت کې شبهه راغله په استدلال کې دلیل زمونږ قطعي الثبوت دي د قرآن کریم نص دي خو زمونږ په دعوی باندې ظني الدلالة دي يو اځې قرائت خلف الامام نه شو نور تاویلات هم په کې راغله .

او کوم دليل چې قطعي الثبوت ظني الدلالت وي افاده د فرضو نه شي کولې دواجبو کولې شي د ترک په صورت کې کراهیت تحریمي راغې فساد نه راځي .

دارنګې د سعید بن المسیب رایه داده چې داد مانځه متعلق نازل دي .

تفسير ابن جرير للطبري جلد ۱۳ صفحه ۳۴۷ :

حدثنا ابن قال حدثنا عبدالرحمن بن مهدي عن رجل عن قتادة عن سعيد بن المسيب وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا . قال في الصلاة .

دارنګې د ابن الشهاب الزهري رایه داده چې داد مانځه متعلق نازل دي .

جامع البيان تفسير الطبري جلد ۱۳ صفحه ۳۴۶ :

حدثني ابو السائب قال حدثنا حفص عن اشعث عن الزهري قال نزلت هذه الآية في فتى من الانصار .

هغه وايي نازل دي دغه آيت په باره د يو ځوان د انصارو کې چې وه نبي عليه السلام . كلما قرأ شيئاً قرأه . څه به يې چې لوستل ده به هم لوستل نازل شو .

﴿وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ .

دارنګې د سعید بن جبیر رایه داده چې دا په حق د مانځه کې دي .

تفسير ابن جرير الطبري جلد ۱۳ صفحه ۳۴۸ :

قال حدثنا المحاربي عن ليث عن وعن حجاج عن القاسم بن ابي بزة عن مجاهد وعن ابي ليلى عن الحكم عن سعيد بن جبير : وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا قال في الصلاة المكتوبة .

د فرض مانځه متعلق نازدي دا دارنګې د ضحاک رضي الله عنه رایه داده چې دا په حق د مانځه کې نازل دي .

تفسير ابن جرير الطبري جلد ۱۳ صفحه ۳۴۸ :

قال حدثنا المحاربي وابو خالد عن جويبر عن الضحاك قال في الصلاة المكتوبة .

داد فرض مانځه متعلق نازل دي .

دارنګې ابراهیم النخعي دهغه رايه هم داده چې داد فرض مانځه متعلق نازل شوې دي.

ابن جرير طبري روايت ذكر كوي :

حدثنا جرير وابن فضيل عن مغيرة عن ابراهيم النخعي قال في الصلاة المكتوبة .

د حضرت سيدي رحمه الله رايه داده چې داد مانځه متعلق نازل دي .

جامع البيان تفسير الطبري جلد ۱۳ صفه ۳۴۹ :

حدثني محمد بن الحسين قال حدثنا احمد بن المفضل قال حدثنا اسباط عن السدي وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا . قال اذا قرئ في الصلاة .

نو دا امر د استماع او د انصات دغه وخت کې متوجه شو .

د ابو العالية رضي الله عنه رايه هم داده چې دا په حق د مانځه کې دي .

تفسير الدر المنثور جلد ٦ صفحه ٧٢١ :

واخرج عبد بن حميد وابو الشيخ عن ابي العالية ان النبي صلى الله عليه وسلم كان اذا صلى بأصحابه فقرأ قرأ أصحابه خلفه .

دا به چې لوستل كول نو وروسته به هم صحابه وو څه لوستل .

فنزلت هذه الآية : وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا . فسكت القوم وقرأ النبي صلى الله عليه وسلم .

دا په جهري مونځونو کې د جمهورو قوي استدلال دي چې انصات په کار دي او استماع په کار ده او داد دغه صحابه کرامو تابعينو او تبع تابعينو اقوال وه .

# الاستدلالات من الاحادیث النبویة :

سنن النسائي جلد ۲ صفحه ۱۴۱ :

اخبرنا الجارود بن معاذ الترمذي قال حدثنا ابو خالد الاحمر عن محمد بن عجلان عن زيد بن اسلم عن ابي صالح عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم .

رحمت عالم صلى الله عليه وسلم وفرمايل .

انما جعل الامام ليؤتم به . ګرځولې شوی دي امام چې اقتداء وکړې شي ده پسې ترتیب ددې اقتداء دادی :

فاذا كبر فكبروا . چې امام تکبیر او وايي نو تاسو هم پسې متصل تکبیر ووايي :

واذا قرأ فانصتوا . کله چې تلاوة شروع کړي تاسو چپ شي .

واذا قال . چې ووايي :

سمع الله لمن حمده فقولوا اللهم ربنا لك الحمد .

تحقیق کې شیخ الالباني ددوي وايي : حسن صحیح .

سندي لحاظ باندې په حدیث څه اعتراض نشته دي وهابیانو دا پرچار شروع کړې دي چې کوم خلک د امام پسې فاتحه نه وايي نو ددې خلکو مونځ نه کیږي دا اوس بار بار دا وايي او په دې یې پوستري هم چاپ کړې دي نو ورکړې چیلنج ورته چې د اذا قرء فانصتوا حدیث نه به څه جواب کوي کله چې امام قرائت کوي نو چپ شي نو دوي څه وايي نا :

اذا قرء القرآن . کله چې قرآن لولي .

فانصتوا . چپ شي .

نو فاتحه قران نه دي دا خو به تاسو له احنافو پوري خندل چې : فاقروا ما تيسر من القرآن نه د قرائت فرضیت ثابتوي او فاتحه یې ترې مستثنی کړې درجې د وجوب ته یې راوستې ده دې کې وهابیان احنافو پورې خاندي نو اوس تاسو د فاتحې او د قرائت فرق

ولې کوي دوي خو د فرق قائل نه دي او د عام قرائت په شان فاتحه هم فرض ګڼي چې هر کله فاتحه د عام قرائت په شان فرض ګڼي دليل د فرضيت به څه پيش کوي :

**لا صلوة لمن لا يقرأ بفاتحة الكتاب** . نو دا خو ظني دي حديث دي او دليل ظني الثبوت قطعي الدلالة هغه خو افاده د وجوب کوي او د فرضيت نه شي کولې حديث خپله ظني دي نو قطعي پرې ولې ثابتوي خبرِ واحد دي نو په دې خو فرض نه ثابتيږي د فرضو دليل راکړه نو دا به پيش کوي **فاقروا ما تيسر من القرآن** نو د **فاقروا** نه يې فاتحه ثابته کړه نو **اذا قرء** کله چې لولي **فانصتوا** چپ شي نو دلته بيا څنګه فرق کوي چې فاتحه نه ده مراد سورة مراد دي او دويمه دا چې ته خو په سورة کې هم لګيا يې کنه تا هلته په دې حديث کله عمل کړې دي دوي خو د امام د سورة سره د سورت لوستلو هم اجازت ورکړې دي خو وايي فرض نه دي فاتحه فرض دي باقي مستحب دي که په حديث باندې جرحه لري نو الباني باندې يې وکړه ستا مشر وايي چې حديث حسن صحيح .

دويم حديث : مسلم جلد ۱ صفحه ۱۷۴ پاکستان چاپ د ابو موسی اشعري رضي الله عنه روايت دي تفصيلي روايت دي چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم يو ځل مونږ ته :

**فبين لنا سنتنا وعلمنا صلاتنا** . د مانځه طريقې يې راولې ښودلې وي فرمايل .

**اذا صليتم فاقيموا صفوفكم ثم ليؤمكم احدكم فاذا كبر فكبروا واذا قال غير المغضوب عليهم ولا الضالين فقولوا آمين يحببكم الله فاذا كبر وركع فكبروا واركعوا فان الامام يركع قبلكم ويرفع قبلكم** .

دغه حديث په دويم سند سره په ډيرو سندونو باندې امام مسلم رسوي داد امام مسلم طريقه ده چې هغه د هر يو د پاره تحويل د سندونو کوي او ډير متعدد سندونه را اخلي هر متن ته وايي :

**حدثنا ابو بكر بن ابي شيبة حدثنا ابو اسامة حدثنا سعيد بن ابي عروبة ح وحدثنا أبو غسان المسمعي حدثنا معاذ بن هشام حدثنا ابي ح وحدثنا اسحاق بن ابراهيم اخبرنا جرير عن سليمان التيمي كل هؤلاء عن قتادة** .

څو سند یې قتادة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورسول دا بې عروبة په سند او معاذ ابن هشام د پلار هشام نه روایت کوي او د سلیمان التیمي په روایت ټول روایت د قتادة نه کوي :

في هذا الاسناد بمثله وفي حديث جرير عن سليمان عن قتادة زیادت د دې الفاظو دي :

واذا قرأ فانصتوا .

نو دا زیادت د ثقه دي مقبول دي .

وليس في حديث احد منهم فان الله قال على لسان نبيه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سمع الله لمن حمده .

دا د دې دري وارو په سند کې نشته .

الا في رواية ابي كامل وحده عن ابي عوانة قال ابو اسحاق قال ابو بكر بن اخت ابي النضر في هذا الحديث فقال مسلم تريد احفظ من سليمان فقال له ابو بكر فحديث ابي هريرة .

هغې سره به څه کوي .

فقال هو صحيح يعني واذا قرأ فانصتوا .

هغه د نسائي روایت چې مخکې ما تاسو ته ذکر کړ ابوبکر ورته وايي حديث د ابي هريرة څنګه دي دې متعلق دلته خو سند کې اختلاف راغې چې د قتادة نه بعضو رواتو زیادت اذا قرء فانصتوا کړې او بعضې نه دي کړې .

اوس هغه روایت د ابو هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې نسائي کې مذکور دي هغه څنګه دي دا روایت یې وریاد کړو نو امام مسلم وايي هو صحيح هغه حدیث صحیح دي .

يعني اذا قرأ فانصتوا . فقال هو عندي صحيح .

امام مسلم ورته وايي زما په نزد هغه صحیح دي .

فقال لمَ لم تضعه هاهنا . هغه حدیث دې دلته ولې وضع نه کړو په دې خپل کتاب مسلم کې دې حدیث د حضرت ابي هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ولې رانه وړو .

قال . امام مسلم وايي .

لیس کل شيء عندي صحیح وضعته هاهنا . ما خو دا نه دي لازم کړي چې هر صحیح حدیث به زه مسلم کې راوړمه ما خو مسلم د کل صحیح احادیثو مجموعه نه ده لیکلې د مضمون موافق د روایاتو چې څومره ضرورت وي ما را اخیستي دي نور خو ډیر صحیح احادیث دي ما ته معلوم دي چې صحیح دي ما مسلم کې نه دي را اخیستې نو :

لیس کل شيء عندي صحیح وضعته هاهنا . هر حدیث صحیحه زما په نزد ما مسلم کې نه دي وضع کړې .

انما وضعت هاهنا ما اجمعوا علیه . چې ټول محدثین پرې اجماع لري .

نو دویم سند د ابو موسی الاشعري په روایت د قتادة نه د بعضو رواتو په زیادت سره د اذا قرأ فانصتوا د مسلم روایت پرې دال شو .

دا روایت د مسلم چې کوم کې زیادت د اذا قرء فانصتوا موجود دي دغه ابو داؤد هم ذکر کړې جلد ۱ صفحه ۱۴۰، ابن ماجه را اخیستي جلد  صفحه ۶۱ ، مسند ابي عوانة را اخیستي جلد ۲ صفحه ۱۳۳ ، بیهقي را اخیستي دي جلد ۱ صفحه ۱۵۵ ، دار قطني را اخیستي جلد ۲ صفحه ۳۲۸.

دریم حدیث : شرح معاني الآثار جلد ۱ صفحه ۲۱۸:

حدثنا احمد بن داود قال حدثنا یوسف بن عدي قال حدثنا عبیدالله بن عمرو عن ایوب عن ابي قلابة عن انس رضي الله عنه قال صلی رسول الله صلى الله عليه وسلم .

مونځ وکړو نبي علیه السلام .

ثم اقبل بوجهه . مخ مبارک یې راواړوو .

فقال . وي فرمائیل .

اتقرؤن والإمام یقرأ . آیا تاسو هغه حال کې چې امام څه لولي تاسو څه لولي .

فسکتوا . خلک غلي شول .

فسألهم ثلاثاً . درې ځل یې تپوس وکړو .

**فقالوا** . صحابه کرامو کې چا عرض وکړو .

**انا لنفعل** . هاو مونږ دا کار کوو چې تاسو څه لولې مونږيې هم لولو .

**قال فلا تفعلوا** . نبي اکرم ﷺ وفرمائل دا کار مه کوي منع راغله د شارع نه چې د امام پسې څه مه لولي .

څلورم حديث : مسند احمد بن حنبل جلد ۲ صفحه ۲۴۰ هغه حديث چې لا صلاة الا بفاتحة الكتاب دي دې وايي :

**وحديث لا صلاة الا بفاتحة الكتاب يخص المنفرد والامام** .

امام احمد وايي چې د ځان ته مونځ کوونکي او د امام متعلق دي .

**فان قراءة الفاتحة في حقهما واجبة** . قرائت د فاتحې په حق د دوي دواړو کې واجب ده .

که ته وايي چې دوي خويې فرض ګڼي واجب يې څنګه ويلې ددوي په اصولو کې د واجبو او د فرضو مينځ کې فرق نشته دوي واجب فرضو ته وايي .

دا اصطلاح د احنافو ده چې د واجبو او د فرضو مينځ کې فرق کړې دي په اثبات د دليل ظني الثبوت سره او دليل قطعي الثبوت سره احنافو دا فرق کړې دي او جماهير دا فرق نه کوي هغوي فرض واجبو ته وايي واجب فرضو ته .

**فهو من العام الذي اريد به الخاص** . دا هغه عام دي چې مراد ترې نه خاص دي .

**واما المأموم** . هر چې مقتدي دي .

**فيجب عليه الانصات في الجهرية** . امام احمد وايي چې هغه انصات واجب ده په جهري کې لکه مخکې ما تاسو ته ذکر کړه چې ثلاثة ائمه قرائت خلف الامام مکروه تحريمي ګڼي ځکه انصات واجب ګڼي او ترک د واجبو خو مکروه تحريمي وي .

**واما في السرية فيسن له ان يقرأ الفاتحة** . سري مونځونو کې ده ته مسنونه داده دلته د يسن د استحباب رايه دې لري چې قرائت د فاتحې وشي .

**لأن الإمام يحمل ذلك عنه** . دا د اول د پاره دليل دي انصات په جهري کې ولې لازم دي امام له ده نه هغه بوج په ځان اچولی دي ، حديث دا دی :

من كان له امام فقراءة الامام له قراءة .

د چا چې امام وي قرائت د امام قرائت دده دي.

وهو حديث حسن روي عن جماعة من الصحابة منهم جابر بن عبدالله رضي الله عنه.

زما استدلال له دې نه دي چې ځلورم حديث چې مونږ پيش كوو هغه د من كان له امام فقراءة الامام له قراءة .

پنځم حديث : مسند احمد بن حنبل جلد ۱ صفحه ۴۵۱ :

حدثنا عبدالله حدثني ابي حدثنا ابو احمد الزبيري حدثنا يونس بن ابي اسحاق عن ابي اسحاق عن ابي الاحوص عن عبدالله قال كانوا يقرؤون خلف النبي صلى الله عليه وسلم .

وه صحابه د نبي عليه السلام پسې څه لوستل .

فقال خلطتم علي القرآن . په ما مو په قرآن كې خلطيت راوسته يعنې بده يې وګڼله لوستل د دوي .

تعليق شعيب الأرنوط ددې حديث نه لاندې ليكلي : اسناده حسن .

شپږم روايت : مسند ابي يعلي جلد ۸ صفحه ۴۲۳ :

حدثنا محمد بن عبدالله بن نمير حدثنا محمد بن عبدالله بن الزبير عن يونس بن ابي اسحاق عن ابي اسحاق عن ابي الاحوص عن عبدالله قال كانوا يقرؤون خلف النبي صلى الله عليه وسلم في الصلاة فقال خلطتم علي القرآن .

قال حسين سليم اسد . تحقيق كوي وايي :

رجاله رجال الصحيح .

دا او هغه پاس يو مضمون دي خو ځكه مې مكرر ذكر كړو چې هغه درجه د حسن كې دي او دا صحيح دي او بل رجال يې رجال د بخاري دي .

كتاب القراءة خلف الامام د امام بخاري جلد ۱ صفحه ۱۲۳ كې باب لګوي : باب لا يجهر خلف الامام بالقراءة ، امام پسې به په قرائت جهر نه كيږي .

عن عبدالله قال قال رسول الله ﷺ لقوم كانوا يقرؤون القرآن فيجهرون به خلطتم علي القرآن .

په ما مو خلطيت راوستلو .

دارنګې سنن دار قطني جلد ۲ صفحه ۲٦٠ :

حدثنا محمد بن مخلد حدثنا احمد بن علي بن سليمان المروزي حدثنا احمد بن سيار المروزي حدثنا عبدان عن خارجة عن ايوب عن نافع عن ابن عمر قال قال رسول الله ﷺ من صلى خلف الإمام فان قراءة الامام له قراءة .

امام پسې چې څوک مونځ كوي د امام قرائت دده قرائت دي .

دارنګې سنن الكبرى للبيهقي جلد ۲ صفحه ١٦٠ :

اخبرنا ابو عبدالله الحافظ اخبرنا ابو محمد الحسن بن حليم الصائغ الثقة بمرو من اصل كتابه كتاب الصلاة لعبدالله بن المبارك .

اخبرنا ابو الموجه اخبرنا عبدان بن عثمان اخبرنا عبدالله بن المبارك اخبرنا سفيان و شعبة وابو حنيفة عن موسى بن ابي عائشة عن عبدالله بن شداد قال رسول الله ﷺ .

مسند ابي حنيفة كې هم دا حديث شته دي عبدالله بن مبارك اخبرنا سفيان وشعبة و ابوحنيفة تاسو ته دا ثابتوي چې عبدالله بن مبارك بذات خود په حديثو كې هم د امام ابو حنيفه رحمه الله شاګرد دي نو عبدالله بن مبارك يوازې فقه كې شاګرد نه دي په حديثو كې هم دي د امام ابو حنيفه رحمه الله شاګرد دي هغه نه يو قول مروي دي چې هغه وويل ابوحنيفة مسكين الحديث .

نو هغې نه وهابيانو دا جوړ كړل چې مسكين في الحديث په حديثو كې مسكين دي نه لري او د عبدالله بن المبارك دا مقصد وه چې مسكين الحديث دي معنى دا چې هغه طالب د حديثو دي او حريص په حديثو دي چې چيرته حديث ګوري نو دې يې طلبوي غواړي يې لكه سوال ګر چې په سوال شي پيدا كوي دغه شان د حديثو طالب دي .

هغه لفظ د مسكين الحديث ويلې دي دوي ترې نه مسكين في الحديث جوړ كړه مسكين دلته په معنى د طالب د شيء سره دي او حديثو ته يې مضاف كړه او اضافت بمعنى اللام دي دلته مسكين للحديث مسكين في الحديث مه جوړه وه دې مسكين دي يعنې طالب دي په شان ته د سوال د مسكين للحديث حديثو لره.

تهذيب التهذيب كې د عبد الله بن المبارك چې يو اځې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ شان كې وګورئ ديو جارح قول ته به هم لاړ نه شي چې ډير اوږد تفصيل يې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په شان كړې ده نو بيا ولې دومره تعصب كوي چې هغه يو قول وكړو چې مسكين الحديث د هغې غلط تأويل ته كوي د هغه نور اقوالو ته هم ګوره چې هغه د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ څومره ثقاوت بيانوي.

نو د حديث عبارت ته راځم:

**قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من كان له امام فان قراءة الامام له قراءة.**

له دې سره د وهابيانو هغه شبه هم دفع شوه دا الفاظ يو په سند د ابن ماجه كې دي چې هغه روايت د جابر بن عبد الله دي چې پاس د مسند احمد نه ما پيش كړو: **من كان له امام فقراءة الامام له قراءة**، د ابن ماجه په سند كې جابر الجعفي راغلې دي په هغه باندې دوي جرحه كوي.

دويم مسند ابي حنيفة د امام ابو حنيفة رَحِمَهُ اللهُ په خپل سند سره رسولې دي هغه سند كې په رجالو باندې هيڅ اعتراض نشته دي نو دا بې دينان راشي امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ باندې جرحه كوي وايي نه امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ضعيف اوس د امام بيهقي له دې سند سره به څه كوي چې:

**عبد الله ابن المبارك اخبرنا سفيان و شعبة و ابو حنيفة عن موسى بن ابي عائشة.**

ابو حنيفه باندې خو به جرحه وكړي سفيان او شعبة سره به څه كوي دلته خو متابع هغوي دي كنه عبد الله ابن مبارك خو يو سند نه وايي ما ته سفيان هم دا حديث په دې الفاظو ويلې ما ته شعبه هم خبر دا سې راكړي ما ته ابو حنيفه هم خبر دا سې راكړي.

اوس د ابو حنیفة جرحې ته څه اعتبار پاتې شو سره ددې نه چې ما د ۲۴ عمده جارحینو اقوال ما جمع کړې ځان سره چې امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ته یې حافظ او ثقه في الحدیث ویلې دي نو دیو څو کسانو قول ته څه اعتبار دي.

او که داسې دیو کس قول ته اعتبار وي په جرحه کې امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ تمام امت کې په حدیثو کې ثقه دي لیکن امام نسائي یې ضعیف ګڼي نو اوس که دیو کس قول ته اعتبار وي هغه نه هم بیا تیر شه نو دا خو ائمه دي دې چا به له چا سره رایه مخالفه وي.

او دغه وخت کې امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ پسې افتراء د مرجئت وه او په دغه زمانه کې خوره وه څوک نزدې ورته نه راتله او یریدل هم ترې نه مناظره کې ډیر تکړه وه.

الابانة کې مې یو روایت ولیدو وایي امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ مدینې منورې ته راغې او دوه محدثین وایي ناست وه خپلو کې بحث شروع کړې وه امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ وربانده رابنکاره شو وایي دوې خپلو کې ویلې چې راځي دا ځای پریږدو بیا به یوه مسئله کې بحث را واچوي هغه مسجد یې وایي پریښودلو لاړل ترې نه امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ داسې انسان وه چې مجلس کې څوک له ده سره مخامخ قدرې کیدې هم نه شو مناظر وه او مناظر ته څوک مخې ته ورځي علم ځان ته شئ دي یو سړي به غټ ملا وي خو مناظره به نه شي کولې.

امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ د زمانې مناظر هم وه دهریانو سره مرجئه وو سره معتزله وو سره دې ټولو سره یې مناظرې کړې دي او أصل کې چې دې جیل ته تلي دي هم دغه وخت قاضي القضاة د منصور باچا چې وه دا معتزلي وه دا خو بهانې وي ورته او څه یې.

چونکې خلک ډیر لرل هیڅ بې هیڅه یې څنګه لاس اچولې وې ورته چې ده کې څه نقصان دي چې جیل ته یې بوځي یو دم کوفه کې بلوی جوړیدله خلکو قیام کولو نو بادشاه په بل شکل بیولې نه شو دا ورته بهانې وي چې له ما سره قاضي شه هغه ته معلومه وه چې دې قضاء نه کوي ولې قضاء نه کوي ته د بادشاه خبره نه مني بهانه یې ورته جوړه کړه بندي یې کړو.

متکلمین دا لیکي چې امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ امام احمد رَحِمَهُ اللهُ وغیره وو باندې چې کوم تکالیف راغلې دي دې زمانه کې وجه یې دا وه چې قاضیان دغه زمانه کې معتزله وه اکثر د بادشاهانو هغه اداري محاکمو ته دوي ځانه رسولې وه.

مثال لکه په افغانستان کې د طالبانو امارت اسلامي کې اهل حدیث هم دننه شول او احناف هم دننه شول خو احناف ساده خلک دي کنه دا چې امارت ونیسي نو یو به ولایت غواړي او بل به وزارت غواړي او وزارت به هم هغه وزارت غواړي چې کوم کې شوروې ډیرې وي خو اهل حدیث به کوم ځای ته ځانونه رسوي چیرته د اوقافو پوسټ کې چیرته د تعلیم تربیه او فرهنګ پوستونو ته به ځانونه رسوي ځکه دوي د خپلې عقیدې پرچار له دغه ځایونو نه کوي.

نو چې اوقاف تعلیم او تربیه دوي ونیول نو ته به بیا څه وکړي مدارس به ددوي په قبضه کې وي مساجد به ددوي په قبضه کې وي دغه شان له مخکې نه خوارج او معتزله دغسې دي چې دوي کله هم راګډ شوې دي په اماراتو اسلامیه وو کې نو دوي تعلیم او تربیه او د قضا غوندې ځیزونو ته ځانونه رسولې دي نو دغه وخت کې قاضیان معتزله وه دې آئمه وو ته یې بهانې لټولې.

او په جارحینو کې هم داسې شوې دي بعضې جارحین متهم په شیعیت سره دي هغه شیعه ګان دي او هغوي چونکې ډیر ذهین وه امت تسلیم کړې دي او د هغوي جرحو ته یې هم څه نا څه اعتبار ورکړې دي نو امامنا باندې بعضې جرحې د شیعه ګانو هم دي ځکه دې د شیعه ګانو سخت مخالف وه.

کمال دادی چې سړي د خپل مذهب مخالف په خپل صفت باندې راولي هغه یواځې امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ چیرته هم د بل امام په تعریف باندې د پردي مقلد صفت کې کتاب نه دي لیکلې په امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ هغه انسان دي چې امام ذهبي وایي په سیر اعلام النبلاء کې چې ما د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په تعریف کې:

**انفردت بجزء في صفته.** دده په صفاتو کې ما په یو مستقل جلد باندې انفراد کړې دي. یعنې نور خو زه هر څه په یوه پاڼه کې خلاصومه خو د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په تعریف ما په مستقل جلد کې کړې دي.

او ابن حجر عسقلاني څومره متشدد شافعي مذهب دي لیکن هغه هم د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په تعریف باندې مستقل کتاب لیکلې دي دا عجیبه خبره ده چې پردي مذهب والا دده په صفت کې شروع کیږي او ابن حجر صاحب وایي چې:

لو كان الدين عند الثرايا لذهب رجال من أبناء فارس حتى يتناولوه.

د بخاري حديث وايي دې کې اشاره امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ته ده دا احناف نه وايي ابن حجر عسقلاني وايي دا ابناء فارس امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ دي.

ابن خلکان يوه خبره ليکلي ده چې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ اولس (۱۷) احاديث ياد وه دومره تعصب اولس (۱۷) احاديثو نه دا دومره دين جوړېږي چې د دين يوه جزيه هم نشته چې په هغې کې قال ابو حنيفة او عند ابي حنيفة موجود نه وي او که رشتيا يې هم ۱۷ احاديث يادوي او د ۱۷ احاديثو نه يې دومره استخراج کړې وي نو دده نه عظيم بزرګ خو صحابه وو نه بعد دي امت کې راغلي هم نه دي چې د ۱۷ احاديثو نه دومره استخراج د مسائلو کوي دا خو يې عجيبه کمال دي.

نافع کبير کې عبدالحي لکهنوي رَحِمَهُ اللهُ د ابن خلکان اعتراض نقلوي او بيا وايي چې ابن خلکان څو کرخې بره دا ويلې چې ۱۷ احاديث يې ياد دي او بيا څو کرخې ښکته راشه دا يې ويلې چې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د حديثو استاذان ۵۰۰ وه نو که يو حديث يې ترې نه دې ياد کړې نو استاذ څنګه شو هغه وخت کې خو ليکل نه وه ليکل خو خلکو بد ګڼل هغه وخت کې به چې چا سره قلم او کتابچه وه نو خلکو به پسې خندل ويل به يې دې غبي ته ګوري قلم يې را اخيستې دي.

هغه زمانه کې هر څه خلکو په ذهن کې ساتل دا خو چې کله وروسته د خلکو ذهنونو هغسې کار نه کولو او د امام بخاري زمانه شوه محدثين سره کيناستل چې قلم والا پورې مه خاندئ ذهنونه خراب شول دين خرابېږي پرېږدي چې جمع يې کړي بيا څو مياشتې دې پسې ګرځيدل چې د حديث د ليکلو د جواز دليل پيدا کړي وايي په څه دليل يې جائز کړو چې ليکل د حديث جائز دي هلته نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړې وه چې:

لا تكتبوا عني غير القرآن. د قرآن نه سوا به ما نه بل څه نه ليکي.

چا چې ليکلي محوه يې کړي نو کيناستل چې اوس ضرورت دي خو د جواز دليل خو پيدا کړي کنه لټيدل لټيدل حتى چې يو کس مستند حديث پيدا کړو چې حجة الوداع کې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خطبه ولوستله اوږده خطبه وه په دې کې ابو شامه يو سپين ږيري وه راپاڅيدلو وايي

یا رسول الله دا خو زما یاد نه شوله دا خو ډیر اوږد بیان وه نو نبي اکرم ﷺ بیان کې لا ولاړ دي چا ته یې امر وکړو :

واکتبوا لأبي شاة. ابي شاة ته زما دا تقریر ولیکي.

بس دغه ځای محدثینو کلک کړو چې دا حدیث وه او د حدیث د لیکلو اجازت یې ابي شاة ته ورکړه ځکه ابو شا کمزوري وه حافظه یې کمزورې وه نو چې د هر چا حافظه کمزورې وي د هغه د پاره لیکل د حدیثو جائز دي د هغې نه بعد لیکل شروع شول.

نو چې ابن خلکان لیکي چې ۵۰۰ استاذان یې وه نو عبد الحي لکهنوي صاحب وایي چې یو حدیث یې ترې زده کړې نه دي استاذ یې څنګه شو لیکل خو نه وه هغه وخت کې چې کتابچه کې به یې لیکلې وې.

او که یو حدیث یې ترې زده کړې وي نو ستا په لاندېنې کربنه ثابتوه شوه چې ۵۰۰ احادیث خو یې یاد وه ځکه ۵۰۰ استاذان لري نو بیا تحقیقي جواب کوي چې د امام ابو حنیفه رحمه الله ۱۷ احادیث نه دي مسند د احادیثو یې ۱۷ دي.

جامع المسانید وګوره چې هغه کې ۱۵ راغونډ شوې دوه لا نه دي را رسیدلې نو دا ۱۷ مسانید د احادیثو دي مسندونه دي په هر یو مسند کې ۲۰۰ یا ۳۰۰ یا ۵۰۰ زیات او کم احادیث پراته دي هغه اشاره دې ته کوي چې مسانید د ابي حنیفة دغه دي.

کله به دا اعتراض کوي چې امام ابو حنیفه رحمه الله خو څه لیکل نه دي کړي دا نو اوس خبره ده.

بنه یې کړي چې نه یې دي کړي لیکل خو هغه وخت کې جرم وه څه صفت خو نه وه کنه هغه وخت کې لیکل خو عیب وه چا کړي دي دا صحابه کرامو کې عبد الله ابن مسعود لیکل کړي دي عمرِ فاروق رضي الله عنه څه لیکل کړي دي یا صدیق اکبر رضي الله عنه څه لیکل کړي دي دا لیکل چې بنه کار وې صحابه کرامو ولې لیکل نه کول.

که څوک وایي چې عبد الله بن عباس رضي الله عنه لیکل کړي نو دروغ ده هغه لیکل نه دي کړي په دوي کې یو اځې د صدیق اکبر رضي الله عنه سره ۵۰۰ احادیث په یو کاغذ کې لیکل شوي وه او مبارک لاړو هغه یې هغلته دفن کړو او تول شپه یې وایي خوب نه کولو بي بي عائشه

رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي ژړل يې ، او سحريې ما ته وويل چې هغه كاغذونه راكړه او لاړ چيرته يې دفن كړو .

چې راغې وايي چې ولې وايي چې دې كې څه ما اوريدلي او څه مې د بل نه اوريدلي وه هسې نه هغه نه غلطي شوې وي او بيګا ټوله شپه ما خوب نه دي كړې او دا حديث را ته مخې مخې ته كيدلو :

من كذب علي متعمداً فليتبوأ مقعده من النار .

بس وايي هغه مې دفن كړو .

نو هغوي كې چا هم ليكل نه دي كړې او كه څوك وايي چې تفسير ابن عباس دي دا هغه نه دي ليكلي دا خو روسته خلكو په مختلفو سندونو باندې درمنثور ابن جرير ابن ابي حاتم وغيره دې ټولو كې يو يو قول د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پيدا كړي او صاحب ناست وي او دا يې را غونډ كړي دي .

دا تنوير المقباس دي د ابن عباس تفسير دې ته مه وايه تنوير المقباس عن تفسير ابن عباس د ابن عباس تفسير چې د دين په كتابونو خور اور شوې وه بنائسته روښانه اقتباس اخذ شوې دي .

نو ليكل هغه وخت كې نه وه بيا هم امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د خپلو معصرينو د هر چا نه دير ليكل كړې دي .

مسانيدو كې څومره ليكل دي د هغه مسند نه څومره حديثونه هغه زمانه كې خلكو نقل كړې دي او دده شاګرد امام محمد رَحِمَهُ اللهُ چې څومره ليكل په هغه زمانه كې كړې يو معصريې هم نه دي كړې .

او كه څوك امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ او امام مسلم رَحِمَهُ اللهُ يادوي نو دا روستني زمانه ده د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ وفات ۱۵۰ سنه كې دي او د امام بخاري په ۲۵۴ كې وفات دي نو ۱۰۴ كاله امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ له ده نه مخكښي ده نو هغه زمانه كې چې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ زمانه وي د چا كتابونه دي څوك پيدا كړي .

نو دا خبرې مې درته ددې لپاره وكړي چې يو عبد الله ابن مبارك هغه دده شيخ دي هغه ده په سې دا سپكه خبره نه كوي چې :

مسکین في الحدیث . مسکین الحدیث ورته وایي.

او بل دغه حدیث چې :

من کان له امام فان قراءة الامام له قراءة .

نو مونږ درته روایت د ابن ماجه نه پیش کوو او ته جرحه په جابر الجعفي کوي .

او که مونږ روایت د مسانید ابي حنیفة نه پیش کړو نو ته جرحه په ابو حنیفه کوي تعصب کوي .

نو اوس دې سند سره به څه کوي چې عبدالله بن مبارک وایي :

اخبرنا سفیان والشعبة وابو حنیفة .

نو دلته خو د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ سره حضرت سفیان معي شو او شعبة معي شو .

او هلته ورسره جابر الجعفي معي شو دا ټول ملګري شول او دغه سند د غسې بیانوي بیا پرې جرحه څه پاتې شوه .

دارنګې عبدالله بن مبارک هم متفرد نه دي .

وکذلك رواه علي بن الحسن بن شقیق عن ابن المبارك وكذلك رواه غیره عن سفیان بن سعید الثوري وشعبة بن الحجاج وكذلك رواه منصور بن المعتمر وسفیان بن عیینة واسرائیل بن یونس وابو عوانة وابو الاحوص وجریر بن عبد الحمید وغیرهم من الثقات الاثبات .

دارنګې المعجم الاوسط جلد ۸ صفحه ۴۳:

حدثنا محمود بن محمد المروزي ثنا سهل بن العباس المروزي نا اسماعیل بن علیة عن ایوب عن ابي الزبیر عن جابر .

دا هماغه د ابن ماجه روایت دي هغلته د ایوب شاګرد جابر الجعفي راغلې دي په هغه یې اعتراض کړې دي ، اوس دلته خو جابر نشته اسماعیل بن علیة دي د هغه په ځای باندې :

قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من صلی خلف الامام فان قراءة الامام له قراءة.

د امام قرائت دده قرائت دي .

دارنګې سنن ابن ماجه جلد ۲ صفحه ۳۳:

حدثنا علي بن حمد حدثنا عبيدالله بن موسى عن الحسن بن صالح عن جابر عن ابي الزبير عن جابر قال قال رسول الله ﷺ من كان له امام فان قراءة الامام له قراءة.

دا په څو سندونو لاړو سند د معجم الاوسط ته وګوره هغه جابر الجعفي نه لري ايوب راځي د ابي الزبير په شاګردانو کې متابع شو د جابر الجعفي سره حديث که ضعيف هم شي خو تعدد د طروقو سره درجې د حسن لغيره قبول ته رسيږي او ايوب خو د مقبول نه دي.

دا رنګې الموطأ د امام محمد جلد ۱ صفحه ۱۹۴:

قال اخبرنا ابو حنيفة قال حدثنا ابوالحسن موسى بن ابي عائشة عن عبدالله بن شداد بن الهاد عن جابر بن عبدالله عن النبي ﷺ انه قال من صلى خلف الامام فان قراءة الامام له قراءة.

دا رنګې الموطأ د امام محمد جلد ۱ صفحه ۱۹۵:

قال حدثنا الشيخ ابو علي قال حدثنا محمود بن محمد المروزي قال حدثنا سهل بن العباس الترمذي قال اخبرنا اسماعيل بن علية عن ايوب عن ابن الزبير عن جابر بن عبدالله قال قال رسول الله ﷺ من صلى خلف الامام فان قراءة الامام له قراءة.

دا رنګې مصنف عبد الرزاق جلد ۲ صفحه ۱۳۶:

عبدالرزاق عن الثوري عن موسى بن ابي عائشة عن عبدالله بن شداد بن الهاد الليثي قال صلى النبي ﷺ الظهر او العصر.

شک کوي د ماسپښين ياد مازديګر لمونځ يې وکړو.

فجعل رجل يقرأ خلف النبي ﷺ. يو سړي د نبي عليه السلام پسې څه لوستل.

ورجل ينهاه. او بل سړي دی چې منع کوه يې.

فلما صلى. چې مونځ يې وکړو.

قال يا سول الله كنت اقرأ. ما قرائت کوه.

وكان هذا ينهاني. او دې بل منع کولم.

فقال له رسول الله صلى الله عليه وسلم من كان له امام فان قراءة الامام له قراءة.

دا اوس د احنافو دليل دي مونځ يې کوه که د ظهر وي که د عصر شک هيڅ تاوان دلته نه کوي ځکه دواړه خفيه دي يو سړي قرائت کړې دي خوا کې ملګري منع کړې دي سلام چې وګرځيده هغه ده لره غصه دي زه دې ولې منع کولم ددې دواړو شور شو شور نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ته ورسيدلو نو هغه راغې.

قال يا رسول الله كنت اقرأ وكان هذا ينهاني.

نو نبي اكرم صلى الله عليه وسلم دغه ځاى کې معرض د حديث بيانوي:

من كان له امام فان قراءة الامام له قراءة.

واضح دليل ددې شو چې د ظهر او د عصر او په خفيه مونځونو کې هم قرائت د امام له مقتدي نه کفايت کوي.

دارنګې الموطأ جلد ١ صفحه ٨٦:

وحدثني يحيى عن مالك عن بن شهاب عن بن اكمية الليثي عن ابي هريرة ان رسول الله صلى الله عليه وسلم انصرف من صلاة. له مانځه نه راو ګرځيدلو.

جهر فيها بالقراءة. دا جهري مونځ وه.

فقال هل قرأ معي منكم احد آنفا. تاسو کې چا ما سره اوس قرائت کولو.

فقال رجل نعم يا رسول الله انا. يو سړي وويل زه ومه.

قال فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم اني اقول. ما وويل څه چل دي ما سره.

انازع القران. قرآن کريم کې منازعه راسره کولې شي.

فانتهى الناس. بس منع شول خلک چې صحابه دي.

عن القراءة. له قرائت نه.

مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فيما جهر فيه رسول الله صلى الله عليه وسلم بالقراءة حين سمعوا ذلك من رسول الله صلى الله عليه وسلم

صحابه وو چې دا خبره کله واوريدله نو صحابه کرام د قرائت مع الامام نه منع شو .

دارنګې سنن دارقطني جلد ۲ صفحه ۱۱۴ :

حدثنا ابوبكر النيسابوري حدثنا بحر بن نصر حدثنا يحيى بن سلام حدثنا مالك بن انس حدثني وهب بن كيسان عن جابر بن عبدالله أن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال : كل صلاة لا يقرأ فيها بأم الكتاب .

هر يو مونځ چې په هغې کې الحمد لله و نه لوستلې شي .

فهي خداج . هغه ناقص دي .

الا ان يكون وراء امام . مګر که امام پسې وي نو ناقص نه دي .

دا څومره واضح دليل د احنافو لپاره دي او دا حديث ابن ماجه کې هم شته دي خو د ابن ماجه په سند کې بيا جابر الجعفي راغلې دي نو له هغې وجې نه چې په هغه اعتراض دي نو ما تاسو ته دارقطني نه په دويم سند د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ سره حديث پيش کړو چې هغه جرحه د دوي ختمه شي .

دې حديث ته به ستاسو سوچ وي د هغوي استدلالات چې شروع کيږي اقوى د استدلالاتو د هغوي نه دا حديث دي چې :

كل صلاة لا يقرأ فيها بأم الكتاب فهي خداج . يا غير تمام ، يا هغه الفاظ چې لا صلاة الا بفاتحة الكتاب .

نو ګوري دا خو نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه عامه خبره کړې او ددې عام نه يې بل ځای کې تقيد په استثنى سره کړې دي نو هغه استثنى هر ځای کې ورسره ولګوه کنه خپله دا معلومه شوه چې :

لا صلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب .

هغه لګيږي د بدون الامام سره نو منفرد شو او امام شو مقتدي نه شو دا حديث استثنى کوي : الا ان يكون وراء امام .

او دارنګې فهي خداج کې رد په دوي باندې دي چې دوي قرائت د فاتحې ته فرض وايي او د فرضو په ترک سره نقصان نه راځي فساد راځي نو فهي خداج دا ناقص دي معنی دا چې شوې دي خو ناقص دي نو دا دليل د احنافو دي چې فاتحه فرض نه ده په مانځه کې بلکې واجب ده په ترک يې نقصان راځي خو فساد نه راځي.

سنن ابي داؤد جلد ۱ صفحه ۳۰۶:

عن قتادة عن زرارة عن عمران بن حصين ان النبي ﷺ صلی الظهر. ماسپښين لمونځ يې وکړو.

فجاء رجل فقرأ خلفه سبح اسم ربك الاعلى فلما فرغ قال ايكم قرأ. کوم يو قرائت وکړو.

قالوا رجل. يو سړي ووېل ما.

قال قد عرفت ان بعضكم خالجنيها. پوه شوم چې بعضو ما سره په کې جګړه شروع کړه. نو که دا په فاتحه رد نه ده نو په قرائت خو رد دي او وهابيان د قرائت هم قائل دي.

دارنګې الموطأ جلد ۱ صفحه ۸۴:

وحدثني عن مالك عن ابي نعيم وهب بن كيسان انه سمع جابر بن عبد الله يقول من صلى ركعة لم يقرأ فيها بأم القرآن فلم يصل الا وراء الامام.

چا چې مونځ وکړو يو رکعت او فاتحه يې ونه لوستله د مونځ نه دي کړي يعنې کامل.

الا وراء الامام. مګر که د امام پسې وي استثناء وشوه.

دارنګې صحيح مسلم جلد ۲ صفحه ۸۸:

حدثنا يحيى بن يحيى ويحيى بن ايوب وقتيبة بن سعيد وابن حجر قال يحيى بن يحيى اخبرنا وقال الآخرون حدثنا اسماعيل وهو ابن جعفر عن يزيد بن خصيفة عن ابن قسيط عن عطاء بن يسار انه اخبره انه سأل زيد بن ثابت عن القراءة مع الامام.

د زيد ابن ثابت نه يې تپوس وکړو چې امام پسې قرائت شته او که نه.

فقال زيد ابن ثابت. وفرمايل.

لا قراءة مع الامام في شيء . امام پسې قرائت په څه شي دمانځه کې نشته نه په جهري کې شته نه په سري کې شته داد احنافو تائيد دي .

دارنګې الموطأ جلد ۱ صفحه ۸۶:

حدثني يحيى عن مالك عن نافع ان عبدالله بن عمر أنه كان إذا سئل . چې چا به تپوس وکړو .

هل يقرأ أحد خلف الامام . امام پسې به څوک قرائت کوي ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ به جواب فرمائلو :

اذا صلى احدكم خلف الامام فحسبه قراءة الامام . د امام قراءة ورته بس دي کنه .

واذا صلى وحده فليقرأ قال وكان عبدالله بن عمر لا يقرأ خلف الامام .

او سند ځومره قوي دي : عن مالك عن نافع عن ابن عمر دي سند ونو ته سلسلة الذهب ويل کيږي يو څو سندونه دي په هغې کې يو په کې عن مالك عن نافع عن ابن عمر دي دې ته سلسلة الذهب وايي او دې ته د سرو زرو ځنځير وايي محدثين دې کې خو هيڅ خبره نشته .

نو كان عبدالله بن عمر لايقرأ خلف الامام .

نافع وايي ده به هم قرائت خلف الامام نه کوه نو وهابيانو نه تپوس په کار ده چې مونځ يې شوې دي او که نه دوي خو وايي چې مونځ نه کيږي کنه .

قال يحيى سمعت مالكاً يقول الأمر عندنا أن يقرأ الرجل وراء الامام فيما لا يجهر فيه الامام بالقراءة ويترك القراءة فيما يجهر فيه .

امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي زمونږ دا رايه ده مخکې د امام احمد صاحب رايه هم ما ذکر کړه او د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ همدغه رايه ده چې کوم ځای کې امام جهر کوي نو مقتدي دې نه لولي .

ويترك القراءة فيما يجهر فيه . او چې کله امام جهر نه کوي نو مقتدي دې بيا لولي .

دارنګې موطأ امام مالک جلد ۱ صفحه ۸۴:

وحدثني عن مالك عن ابي نعيم وهب بن كيسان انه سمع جابر بن عبدالله يقول من صلى ركعة لم يقرأ فيها بأم القرآن فلم يصل الا وراء الامام .

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۳۸۶ :

حدثنا وكيع عن الضحاك بن عثمان عن عبدالله بن يزيد عن ابن ثوبان عن زيد بن ثابت قال لا تقرأ خلف الامام ان جهرَ ولا ان خافت .

ته به امام پسې څه نه لولې که امام جهر کوي که پټ والې کوي ګوري د زيد بن ثابت دا فتوى د مسلم د روايت تفصيل دي چې :

لا يقرأ خلف الامام في شيء . داد امام ابو حنيفه رَحِمَهُ‌ٱللَّٰهُ مذهب دي چې کوم زيد بن ثابت بيان کړي دي .

دارنګې سنن الكبرى للبيهقي جلد ۲ صفحه ۱۶۰ :

اخبرنا ابو عبدالله الحافظ وابو سعيد بن ابي عمرو قالا حدثنا ابو العباس محمد بن يعقوب اخبرنا هارون بن سليمان حدثنا عبدالرحمن بن مهدي عن سفيان وشعبة عن منصور عن أبي وائل أنّ رجلاً سأل ابن مسعود عن القراءة خلف الامام .

د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ‌ٱللَّٰهُ‌عَنْهُ نه د قراءة خلف الامام تپوس چا وکړو .

فقال انصت للقرآن فان في الصلاة شغلاً وسيكفيك ذاك الامام .

تا نه به دې قرائت کې امام کفايت کوي .

دارنګې شرح معاني الاثار جلد ۱ صفحه ۲۱۹، دا زه د مختلفو کتابونو حوالې ځکه ذکر کوم چې دا ټول سندونه معاني الآثار جمع کړې دي .

خو ما د اهل حديثو بيان واوريدلو وايي چې قرائت خلف الامام ته راشي وايي طحاوي به يې کلک راټينګ کړې وي چيرته بل کتاب دوي سره نشته .

اوس ګوري چې کتابونه مونږ سره شته او که نه ابو داؤد مونږ سره دي بخاري مونږ سره دي او د مسلم حوالې مو ذکر کړې د دار قطني حواله مو هم پيش کړه موطأ خو ټوله زمونږ ده په دې باب کې ځکه هغه خو قائل زمونږ د مذهب دي دغسې ابن ابي شيبة له مونږ سره دي .

نو چې کوم روايت ما بل ځاى نه دي پيدا کړي نو ځکه ما معاني الآثار پيش کړې دي ګنې زه دا بالکل پيش کوم نه او باقي معاني الآثار په اتفاق د محدثينو ثقه دي خپل سند لري د حديثو په سند يې جرحه وکړه کنه.

معاني الآثار جلد ۱ صفحه ۲۱۹:

حدثنا ابوبكرة قال ثنا ابوداؤد قال ثنا خديج بن معاوية عن ابي اسحاق عن علقمة عن ابن مسعود رضي الله عنه قال ليت الذي يقرأ خلف الامام مليء فوه ترابا.

کاش هغه سړي چې قرائت خلف الامام کوي دا خوله يې د خاورو ډکه شي څومره غصه دي هغه چا لره چې د قرائت خلف الامام قائل دي.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۳۷۶:

حدثنا وكيع عن الضحاك بن عثمان عن عبيد الله بن مقسم جابر قال لا تقرأ خلف الامام.

امام پسې به څه نه لولي د حضرت جابر رضي الله عنه فتوى ده.

دارنګې معجم ابن الاعرابي جلد ۵ صفحه ۲۷۰:

حدثنا الفضل قال وحدثنا ابونعيم قال سمعت ابن ابي ليلى ومر على دار ابن الأصبهاني فقال حدثنا صاحب هذه الدار وقد قرأ على أبي عبدالرحمن السلمي عن المختار بن عبدالله بن ابي ليلى عن علي بن ابي طالب رضي الله عنه قال من قرأ خلف الامام فليس على الفطرة.

د لته فطرة اسلامي نه دي مراد له فطرة نه دلته سنت دي چا چې قرائت خلف الامام کوه دا په سنتو نه دي يعنې په سنتو برابر نه دي.

دارنګې السنن الکبرى للبيهقي جلد ۲ صفحه ۱۶۳:

اخبرنا محمد بن عبدالله الحافظ ومحمد بن موسى بن الفضل قالا حدثنا ابو العباس محمد بن يعقوب حدثنا اسيد بن عاصم حدثنا الحسين بن حفص عن سفيان عن عمر بن محمد عن موسى بن سعد عن ابن زيد بن ثابت عن ابيه زيد بن ثابت قال من قرأ وراء الامام فلا صلاة له.

چا چې امام پسې قرائت کوه مونځ يې واي نه کيږي.

د لا صلاة له قول دده حمل کړې په جهري باندې او لا صلاة نفي د کمال کړي چا چې په جهري لمونځونو کې قرائت خلف الامام وکړو نو مونځ يې کامل نه دي ځکه مکروه تحريمي ترې شوې.

سنن دار قطني جلد ۲ صفحه ۱۲۳:

حدثنا بدر بن الهيثم القاضي حدثنا محمد بن اسماعيل الأحمسي حدثنا وكيع عن علي بن صالح عن ابن الأصبهاني عن المختار بن عبدالله بن أبي ليلى عن ابيه قال قال علي رضي الله عنه من قرأ خلف الامام فقد اخطأ الفطرة.

چا چې قرائت خلف الامام کوه سنت يې خطاء کړل.

دارنګې مصنف عبد الرزاق جلد ۲ صفحه ۱۲۹:

عبدالرزاق عن عبدالرحمن بن زيد بن اسلم عن ابيه قال نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن القراءة خلف الامام.

منع يې کړې له قرائت خلف الامام نه.

قال وأخبرني اشياخنا ان عليا قال من قرأ خلف الامام فلا صلاة له.

د حضرت علي رضي الله عنه قول دا دی چې څوک امام پسې قرائت کوي مونځ يې کامل نه دي.

قال وأخبرني موسى بن عقبة أن رسول الله صلى الله عليه وسلم وأبو بكر وعمر وعثمان كانوا ينهون عن القراءة خلف الامام.

دې ټولو به د قرائت خلف الامام نه خلک منع کول.

دارنګې شرح معاني الآثار جلد ۱ صفحه ۲۲۰:

حدثنا ابن ابي داؤد قال حدثنا ابو صالح الحراني قال حدثنا حماد بن سلمة عن ابي حمزة قال قلت لابن عباس اقرأ والامام بين يدي فقال لا.

امام چې زما مخې ته يې قرائت لو لمه ويل نه.

دارنګې شرح معاني الآثار جلد ۱ صفحه ۲۰۵ :

حدثنا ابن مرزوق قال حدثنا وهب بن جرير بن حازم قال حدثنا ابي قال سمعت ابا يزيد المدني يحدث عن عكرمة عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ انه قيل له ان ناساً يقرءون في الظهر والعصر.

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته چا وويل چې دلته څه خلک دي ماسپښين او مازديګر کې قرائت کوي.

فقال لو كان لي عليهم سبيل لقلعت السنتهم.

که زما پرې وس بَر شي نو ژبې به ترې کټ کړم.

ګورئ د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ رايه هم د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د رايې په شان ده په سري کې هم منع کوي.

دارنګې الموطأ د امام محمد جلد ۱ صفحه ۲۰۴ :

قال محمد اخبرنا داؤد بن قيس الفراء اخبرنا محمد بن عجلان ان عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ قال ليت في فم الذي يقرأ خلف الامام حجراً.

عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي: کاش! په خوله د هغه چا کې چې قرائت خلف الامام کوي کاڼي واي څوک پيدا شوې واي چې دا خوله يې ورته له کاڼو ډکه کړې واي وربنده کړې واي بالکل.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۱ صفحه ۳۷۶ :

حدثنا وكيع عن قتادة عن داؤد بن قيس عن أبي بجاد عن سعد قال وددت أنّ الذي يقرأ خلف الامام في فيه جمرة.

خوښه مې داده چې قرائت خلف الامام کوي خوله کې سکروټې واچول شي.

دارنګې روح المعاني جلد ۵ صفحه ۱۴۲:

وقال الشعبي أدركت سبعين بدريا كلهم يمنعون المقتدي عن القراءة خلف الامام.

دا حديث روح المعاني په مذکوره صفحه را اخيستې دي خو ما په متون الحديث کې ولټوه خو پيدا مې نه کړ.

امام شعبي خود ۵۰۰ صحابه کرامو ملاقات کړې خو د ۷۰ بدري صحابه وو ملاقات یې کړې دي ، نو وایي چې د ۷۰ بدري صحابه وو ملاقات مې وکړو ټولو به د قرائت خلف الامام نه خلک منع کول .

دارنګې شرح ابي داؤد للعیني جلد ۳ صفحه ۵۰۳ :

**وذکر اصحابنا ان منع المقتدي عن القراءة مأثور عن ثمانین من کبار الصحابة منهم علي والعبادلة رضي الله عنهم.**

زمونږ ائمه دا نقلوي چې قرائت خلف الامام منع د مقتدي د ۸۰ لویو صحابه وو نه منقوله ده په هغې کې حضرت علي رضي الله عنه غوندې انسان دي او په هغې کې عبادلة الثلاثة یا اربعه دي .

که دیو چا ذهن ته دا راشي چې تا خو په سندونو تحقیق ونه کړو دې کې به ضعیف سند وي .

هغې د پاره دومره زه وایم چې دا څومره روایات ما ذکر کړه دا ټول ضعیف کړي نو یو ضعیف چې دومره طروق متعدد ولري او دومره مضمون پرې ثابت وي نو بیا یې درجه څه ده هسې ستاسو ذهن پرې خلاصوم چې دا ټول هم ضعیف شي د سند په لحاظ سره دا دومره کتب الحدیث او جمع غفیره داد عمده صحابه وو فتوی ګانې دوي سره به څه کوي.

نو دا هغه مسئله وه چې وهابیانو شورش ورکړې چې د احنافو مونځ نه کیږي ځکه قرائت خلف الامام نه کوي او در حقیقت ددوي لمونځونه ناقص دي چې په جهري کې څوک قرائت خلف الامام کوي .

## المبحث الثاني :

په اخره کې ددوي یو څو روایات ما را اخیستې دي یو کتاب دې په نوم د آثار السنن د علامه نیموي رحمه الله تصنیف دي هر حنفي ته په کار دادی چې دا پیدا کړي او له ځان سره یې وساتي دا ډیر یو جامع کتاب دي دې مدینې منورې ته تللې وه هغلته یې افتراء اوریدلي وه د دیوبند د اساتذه وو نه مخکې دي .

نو مدينه منوره کې علامه نيموي صاحب افتراء اوريدلي وه چې دا حناف چې دي دا رايې تابع دي حديث نه لري نو دغه اعتراضونه پرې ډير بد لګيدلي وه نو چې واپس هندوستان ته راغې ده قسم کړې وه چې زه به تمامه فقه حنفي په حديثو ثابتومه بس بيا يې شروع وکړه چې کتاب الجناية ته ورسيدلو نو مبارک وفات شو هغه ارمان يې پوره نه شو.

نو دا يو جلد يې دنيا کې پاتې دي خو داسې کتاب يې ليکلي چې هرچا کتاب ليکلي نو مقابل جانب پرې رد کړې خو په آثار السنن تراوسه چا رد نه دي کړي چيرته به هم د وهابيانو کتاب پيدا نه کړي چې د آثار السنن مقابله يې کړې وي ځکه دې داسې نا اشنا محقق دي چې په اسماء الرجال کې داسې تحقيق کړې چې د هغې څه جواب نه کيږي.

بيا دده شاګرد اعلاء السنن وليکلو د خپل شيخ هغه ارمان يې پوره کړو نو اعلاء السنن خو يقيناً له ده نه ډير تفصيلي دي خو طرزيې دومره ښکلي نه دي لکه دده چې څومره ښکلي طرز دي له هغه نه خبره ورک کيږي يعنې هغې نه اخذ په مشکله سره کيږي.

نو ددوي چې کوم ضعيف روايات دي هغه خو به زيات وي او هغه علامه نيموي اشارات ورته کړې دي جواب کړې دي خو هغه اقوی دليل چې له دوي سره حديث صحيحه دي او په دليل کې ذوي پيش کوي هغه حديث صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۱۹۲ کې مذکور دي:

حدثنا علي بن عبدالله قال حدثنا سفيان قال حدثنا الزهري عن محمود بن الربيع عن عبادة بن الصامت أن رسول الله ﷺ قال لا صلاة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب.

دغه حديث ددوي هغه قوي دليل دي د سند په لحاظ سره خو علامه نيموي رحمه الله فرمايي:

لكن في الاستدلال بهذا الحديث نظر.

حديث خو صحيح دي د سند په لحاظ خو د قرائت خلف الامام د مقتدي لپاره ددې حديث نه اخذ په دې کې اعتراض دي.

همدغه حديث سنن ابي داؤد را اخيستې جلد ۱ صفحه ۳۰۲ کې د عبادة بن الصامت روايت ذکر کوي:

قال لا صلاة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب فصاعداً .

سند کې سفیان راځي .

قال سفيان لمن يصلي وحده .

داد هغه چاباره کې دي چې ځان ته لمونځ کوي او یا امام وي داد مقتدي متعلق نه دي .
دارنګې سنن الترمذي جلد ۲ صفحه ۱۱۸ :

وأما أحمد بن حنبل فقال معنى قول النبي صلى الله عليه وسلم لا صلاة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب اذا كان وحده .

کله چې ځان ته وي او س ته د امام احمد بن حنبل نه په دې حدیث بنه پوهیږي ته د سفیان ثوري نه چې راوي ددې حدیث دي او په سند کې راغلي له ده نه ته بنه پوهیږي چې داد قرائت خلف الامام متعلق را اخلي .

نو امام ابي داؤد د سفیان الثوري قول را اخلي چې :

لمن يصلي وحده .

او امام ترمذي چې دې هغه د امام احمد رحمه الله قول په دې ځای را اخلي .

واحتج بحديث جابر بن عبدالله حيث قال من صلى ركعة لم يقرأ فيها بأم القرآن فلم يصل الا ان يكون وراء الامام .

دا الا ان يكون وراء الامام چې مخکې ما تاسو ته حدیث ذکر کړ او ما درته ویلې چې دا استثنی یاده ساتي هغه ددغه ځای لپاره چې استدلال په دغه حدیث ددوي تام نه دي دې حدیث کې دا نه دي راغلې چې مقتدي یا امام یا منفرد .

خو چې هر کله په روایت د جابر بن عبد الله کې دا راغلل چې الا ان يكون وراء الامام ، نو مقتدي یې ترې مستثنی کړه ددې حدیث عام نه چې هر کله مستثنی شو نو حدیث د لا صلاة لمن لا يقرء بفاتحة الكتاب پاتې شو حکم ددې تر امام پورې .

قال احمد بن حنبل فهذا رجل . دا دي جابر بن عبد الله یو سړی .

من اصحاب النبي صلی الله علیه وسلم تأول قول النبي صلی الله علیه وسلم لا صلاة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب ان هذا اذا كان وحده.

امام احمد دغې نه استدلال کوي چې دادي جابر ابن عبد الله د نبي علیه السلام صحابي دي هغه د لا صلاة الا بفاتحة الكتاب عام تر مقتدي نه پرېږدي بلکې مقتدي ترې مستثنى کوي: الا ان يكون وراء الامام استثنى يې کړې ده نو امام احمد دې نه اخذ کوي چې د نبي علیه السلام يو صحابي دي دغه حديث عام پرې نه ښودلو.

نو مونږ به په دې شکل جواب کوو چې راوي دا حديث يو بل صحابي جابر ابن عبد الله دا مختص تر اماما که تر منفرد که نه تر مقتدي استثنى يې وکړه ترې نه.

په رواتو کې سفيان الثوري دا مختص تر منفرد که امام احمد بن حنبل غوندې امام د حديثو دا مختص تر منفرد که نو حديث صحيح دي خو استدلال يې تام نه دي.

دويمه طريقه داده چې د بخاري حديث به ورته پيش کړي په همدې سره د عبادة بن الصامت روايت يې پيش کړې دي.

لا صلاة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب فصاعداً.

نشته لمونځ چې فاتحه ونه لولي او څه زيات تلاوت ورته ونه کړي همدغه حديث امام ابي داؤد په صحيح سند سره زيادت د قول د فصاعداً په کې کوي.

وهابيانو نه اوس دا تپوس په کار دي چې دغه حديث د فصاعداً چې په کې راغلې دي دا تر امام منفرد دي او که دا تر مقتدي پورې عام دي که مقتدي پورې عامه وي نو دا خو وايي ستاسو هم فتوى نه ده دوي هم وايي چې فاتحې نه اخوا ته تلاوت مقتدي لره مستحب دي د ترک په صورت کې لا صلاة قائل نه دي.

او حديث دا ثابتوي چې: لا صلاة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب فصاعداً.

څه زائد يې هم ونه لوستل نو مونځ يې نه کيږي نو د قيد د فصاعداً د روايت د ابي داؤد نه واضحه معلومه شوه چې دا مقتدي نه يادوي دا امام او منفرد يادوي.

دريم دلته دوي په فرضيت د فاتحې درسره مباحثه کوي چې فاتحه فرض ده دليل دا پيش کوي، نو د هغې نه جواب په څو طريقو صوري کيدې شي چې حديث دا متواتر نه دي خبرِ واحد صحيحه دي او اخبار احاد افاده د علم قطعي نه کوي د ظني کوي.

دوي ځان ته يو اصل جوړ کړې دي چې حديث صحيحه مفيد د علم قطعي دي نو ورته وايه په دغه خبره باندې ما ته اسلافو کې يو اصل راکړه.

اصول حديث خو به هغه منو چې کوم اسلافو بيان کړې دي اصولو حديث باندې کتابونه ليکل شوې هغه کتابونه اصول حديث باندې ليکل شوې هغه کتابونه چې اصولِ حديث کې ليکل شوې په هغې کې يو جزيه ما ته وښايه چې حديث صحيحه مفيد د علم قطعي دي.

دا خو ته بالکل خرق الاجماع کوي په دې مسئله کې وايي نه چې صحيح شو نو شبهه ختمه شوه نو شبهه کله ختمه ده احاد په کې راغلې شبهه بيا هم باقي ده قطعيت خو نه فائده کوي او که کوم سړي تعصب کوي د اسلافو اصول نه مني او وايي چې نه حديث صحيح مفيد د علم قطعي دي.

نو هغه ته وايه چې الله دې په سترګو ړوند کړه لکه په زړه چې ړوند يې ته خپله ګريوان کې فيصله وکړه چې حديث د لا صلاة الا بفاتحة الکتاب او قرآن عظيم الشان يو آيت ستا په نزد باندې په علم قطعي په افاده کې په مثابت دي.

آيا حديث مذکوره في البخاري هغه شان علم او يقين افاده کولې شي څومره يقين چې قرآن کريم افاده کوي نو چې نه يې شي کولې هغه مفيد د علم قطعي دي نو خپله به دلته ظني قول کوي که دا دی مفيد د علم قطعي کړ نو دا خو دي په مثابت د قرآن کريم کې وګرځوه په تواتر او حديث متواتر نه دي خبرِ واحد دي دده مرتبه خو د قرآن عظيم الشان نه په قطعيت کې کمه ده دې دې هم ګريوان کې سوچ وکړي د قرآن کريم د نص او مره قطعيت خو نه لري ولو که صحيح ثابت دي.

نو چې هغومره افاده د قطعيت نه شي کولې قرآن کريم مفيد د علم قطعي دي خپله خبرِ واحد مفيد د علم ظني پاتې شو که دا هم مفيد د علم قطعي وګرځي.

نو فرق به څه شي په مينځ د اخبار احاد او د قرآن عظيم الشان کې.

بیا خو فرق پاتې نه شو په افادې د علم کې هلته هم منکر کافر شو دلته دې هم منکر کافر کړ نو فرق څه شي دي په کې نو دا مفید د علم ظني دي.

او حدیث ظني الثبوت او **قطعي الدلالة** دا افاده د وجوب کوي او د فرضو نه شي کولې ځکه دلیل کې شبهه راغله نو لهذا فاتحه واجب ثابته شوه فرض نه همدغه د احنافو رایه ده چې واجب ده او فرض نه ده.

او بله طریقه داده چې روایت د حضرت ابوهریره رضي الله عنه کې دا راغلي:

**فهي خداج**. که چا ونه لوستله نو مونځ یې ناقص دي.

نو ناقص خو فاسد ته نه ویل کیږي لکه حدیث مبارک کې راځي:

**الصلاة مثنى مثنى ان تشهد في ركعتين وان تباءس وتمسكن وتقنع بيديك وتقول اللهم اللهم فمن لم يفعل ذلك فهي خداج**. (جامع الأصول ج ۵ صفحه ۴۳۳).

چا چې ونه کړو مونځ یې ناقص دي.

اوس به هلته څه معنی کوي چې مونځ یې نه دې شوې چې چا دعاء بعد الفرض یا بعد السنة نه ده کړې.

خو ناقص معني دا چې آدابو کې کم شو کنه د خداج اطلاق خو په دغې هم کیږي ناقص ورته ویل شوې چې ناقص وویلې شو.

نو لا صلاة کې نفي د جنس مه کوه نفي د صفت الجنس وکړه.

دا لا صلاة کې کوم لا دي لنفي الجنس دي کنه او تاسو په جامي کې ویلې اطلاق د لا لنفي الجنس اختصار دي په حقیقت کې دا لا لصفت الجنس ده یعنې لا لنفي صفت الجنس ده مثلاً **لا رجل قائماً في الدار** په یو کور دې ډزې شروع کړې دي او یو چغه وکړي **لا رجل قائماً في الدار** په کور کې ولاړ سړي نشته بس ډزې بندې کړي.

ددې اوس څه معنی سړي نشته که ولاړ نشته ولاړ نشته کنه سړي خو په کې دي **لا رجل قائما في الدار** نفي د صفت د رجل نه کوي چې قیام دي قیام ترې نفي کوي سړي نه نفي کوي نو

لا لنفي صفت الجنس ده دا لنفي الجنس نه ده اطلاق د نفي الجنس ولې کیږي وایي اکثراً دي د پاره خبر لفظ د موجود راځي لکه لا اله موجود اکثر داسې راځي د الفاظِ عامو نه یې خبر راځي.

نو چې هر کله د الفاظِ عامو نه یې خبر راغې او لا لنفي الجنس کې نفي صفت الجنس او دغه وخت کې صفت دده وجود دده دي او د یو ذات نه چې دغه وجود نفي کړي خو ذات خپله ختم شو نو لا لنفي الجنس په دغه وجه ورته وایي چې په کومو ځایونو کې ددې د پاره خبر وجود راشي موجود او ته دا لا صفت د وجود ته راجع کړي او دا وجود ترې لرې کړي چې وجود دې لرې کړ خو ذات دې لرې کړو نو ځکه ورته نفي الجنس وایي تغلیباً دغه اطلاق شوې دي ورنه په حقیقت کې دا نفي صفت الجنس ده نفي د جنس نه ده.

نو لا صلاة دا لا دې جنس ته مه متوجه کوه صفت ته یې متوجه کړه لا صلاة چې جنس ته متوجه شو معنی جنس مونځ نشته یا د مانځه هغه ذات یې نشته دي خو فرض دې ترې ثابته کړه او که ته یې صفت ته متوجه کړي لا صلاة کاملة مونځ شته دي خو کامل نه دي صفت ترې نفي کړه مونځ مه نفي کوه.

او لا دلته دې هم لنفي صفت الجنس په حقیقت کې خو هغه وخت کې نفي د جنس وي چې خبر ورته موجود را واخلي او کوم محدث به دا معنی وکړي چې لا صلاة موجود الا بفاتحة الکتاب.

مونځ موجود نه دي سوا د فاتحې د کتاب نه خو ټول فقهاء او محدثین دغه ځای کې دا وایي چې لا صلاة کاملة، کامل مونځ نه دي چې فاتحه نه وي.

او داسې ډیر ځیزونه دي چې هغې ته نسبت د لا صلاة شوې دي لکه لا صلوة لجار المسجد الا في المسجد، د ګاونډي د مسجد مونځ نه کیږي مګر په مسجد کې او س لا ذات ته کله راجع کولې شي چې ذات یې نه کیږي نه لا صلاة کاملة کامل نه دي ځکه جمع ترې پاتې شوې ده.

نو دا اقوی ادله د مثبتینو د قرائت خلف الامام نه دي خو استدلال یې تام نه دي حدیث باندې هیڅ جرحه نشته حدیث قویه دي.

خو دا چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د چا باره کې ویلې دي هغه نه دي معلوم هغه نور صحابه کرام وراء الامام استثناء کوي سفیان الثوري تر منفرد پورې خاص کوي.

امام احمد رَحِمَهُ اللهُ یې تر منفرد خاص کوي ائمه یې تر منفرد پورې خاص کوي نو دغه استدلال تام نه دي.

دویم روایت: هغه روایت د ابي داؤد او د ترمذي دي او امام بخاري په جزء قرائت خلف الامام کې را اخیستې دي هغه هم روایت د عبادة بن الصامت دي:

حدثنا عبدالله بن محمد النفیلي حدثنا محمد بن سلمة عن محمد بن اسحاق عن مکحول عن محمود بن الربیع عن عبادة بن الصامت قال کنا خلف رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في صلاة الفجر فقرأ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

فثقلت علیه القراءة. قرائت پرې درونده شو.

فلما فرغ قال لعلکم یقرءون خلف امامکم قلنا نعم هذا یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

قال لا تفعلوا الا بفاتحة الکتاب فانه لا صلاة لمن لم یقرأ بها.

نو دا الفاظ اوس په دې دال دي چې مقتدي یې هم ونه لولي نو لا صلاة راجع شو ورته.

دا حدیث یو خو دې په سند کې مکحول راغلي دي عن محمود بن الربیع او مکحول معروف دي په تدلیس باندې دلته یې عنعن کړې ده او عنعن د مدلس مقبوله نه وي دا یو علت فمعلول بثلاثة وجوه دا حدیث معلول دي په درې وجهو یو یې سند کې مکحول دي وهو مدلس وقد عنعن، مدلس دي عنعن یې کړې.

حافظ ذهبي په میزان الاعتدال د مکحول دمشقي متعلق لیکي:

مفتي اهل دمشق وعالمهم والثقة غیر واحد.

ډیرو علماوو یې توثیق کړې دي.

وقال ابن السعد في الطبقات ضعفه جماعة . يوه لويه ډله يې تضعيف کوي .
امام ذهبي وايي :
قلت هو صاحب تدليس . دې مدلس وه .
وقد رمي بالقدر . مرمي وه په قدريت باندې .
نو هغه محدثين چې قدريت او اعتزال جرحه ګڼي د هغوي په نزد خو حديث ضعيف دي بيا .
او دارنګې عنعن د مدلس چې مقبوله نه ده د هغوي په نزد دا کله په شاهد کې پيش کيدې شي .
مرمي بالقدر وه دې قدريه وو نه وه .
وقال في الطبقات الحفاظ . امام ذهبي وايي .
يرسل كثيراً . ډير زيات ارسالات به يې کول .
ويدلس عن ابي بن كعب عن عبادة ابن الصامت وعائشة . خاصتاً د بي بي عائشې رضي الله عنها عبادة ابن الصامت او د ابي بن كعب نه به يې تدليسات کول دده په سندونو کې .
فثبت انه يدلس ويرسل عن الصحابة كثيراً وهذا الحديث رواه معنعناً عن محمود ابن الربيع .
نو يو اعتراض دغه دې چې دلته د مکحول مدلس عنعن راغلې ده ، دويم اعتراض دادی :
وقد اضطرب في اسناده . دده په سند کې اضطراب دې .
امام بيهقي په سنن کې په جلد ۲ صفحه ۱۶۴ کې چې حاشية جوهر النقي پرې لګيدلې ده هغې ذکر کړې دې :
قلت رواه مكحول مرة عن عبادة بن الصامت مرسلاً . بعضې سندونو کې مکحول داد عبادة بن الصامت نه مرسل پيش کوي سند کې محمود بن الربيع ترک کوي .
دويم : واخرى عن نافع بن محمود عن عبادة .

دویم سند کې عن نافع بن محمود عن عبادة پیش کوي .

دریم : تارة عن محمود عن عبادة . په دریم سند کې عن محمود عن عبادة پیش کوي .

وتارةً عن محمود عن ابي نعيم انه سمع عبادة عن النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

اوس دلته څلورو سندونو باندې مکحول روایت کوي کله ارسال کوي د عبادة نه واسطه په کې د نافع بن محمود پریږدي کله په واسطې د نافع بن محمود عن عباده پیش کوي ، او کله عن محمود عن عبادة نو نافع نه نه د پلار د محمود نه یې پیش کوي او کله عن محمود عن أبي نعيم أنه سمع عبادة بن الصامت .

اصل کې د نافع بن محمود د عبادة نه سماع نشته دي نو چې سماع نشته دي دلته په وسط کې قطعه راغله حدیث بیا څنګه قوي شو او څنګه شاهد پیش کیږي .

نو بعضې روایاتو کې بیا عن محمود عن ابي نعيم انه سمع عبادة دي نو دا اضطراب سندي دي .

نو علامه نیموي فرمایي :

فادخل بين محمود وعبادة رجلاً آخر وهو ابو نعيم فاضطرب اسناده والاضطراب مورث يضعف .

نو دویم علت دا دی چې دې کې اضطراب دي .

دریم اعتراض دا دی چې ددې په سند کې محمد ابن اسحاق راغلې دي ولا يحتج به اذا انفرد ، هغه چې په سند کې یوائې راشي مدار وګرځیږي او د هغه متابع موجود نه وي دلیل کې نه شي پیش کولې په هغه جرحې دي .

حافظ الذهبي په میزان الاعتدال کې په ترجمه د محمد بن اسحاق کې لیکي :

وما انفرد به ففيه نكارة . چې کله دې منفرد وي هغه کې نکارت وي .

فان في حفظه شيئاً . دده په حافظه کې څه کار وه یعنې کمزورې وه .

حافظ ابن حجر په درایه کې لیکي :

في كتاب الحج وابن اسحاق لا يحتج بمن فرد به من الاحكام فضلاً عما اذا خالفه من هو اثبت منه .

نو فالحديث معلول بثلاثة وجوه .

علامه نيموي وايي :

فبذلك بطل قول من زعم ان هذا حديث حسن .

چا چې دې حديث ته حسن ويلې دي نو د هغه قول وباطل شو چې دې کې دري علتونه دي عنعن د مدلس مکحول ورکيده اضطراب د مکحول دي بين عبادة وبينه ، چې کله زيادت د ابونعيم کوي او کله نه کوي .

او بل تفرد د محمد ابن اسحاق دي چې مدار راغلې متابع نه لري او محمد بن اسحاق اذا انفرد لا يحتج به .

څه نور روايات د دوي په دې مسئله باندې شته دي ضعيف او باقي کوم زيات چې دوي پيش کوي د صحابه وو اقوال دي وه دې شرميږي ، څکه بشاوري وايي :

هذا موقوف لا حجة في الموقوفات . نو موقوف خو د دوي په نزد دليل نه دي نو بيا يې پيش کوي ولې .

د صحابه وو فتوى خو دوي ته دليل نه ده هغه چې نه ترې واوري او نه يې ورسره ومني هغه خو لنډه خلاصه کړي امين الله بشاوري وهابي اول نه آخره پورې څه د پاسه ځلويښت (۴۰) ځايه دا ليکلي چې موقوف کې دليل نشته نو چې موقوف کې دليل نشته دي نو مونږ ته يې څه ته پيش کوي بيا .

د هغوي خو مسند لټوي او مه جرحې اګر که ضعيف دي علامه نيموي پرې رد ود کوي خو چې ضعيف نه هم شي البته يو روايت د حضرت ابو هريره رضي الله عنه دوي پيش کوي ډيرپرې نازيږي چې ابو هريرة رضي الله عنه نه شاګرد تپوس وکړو چې امام ورانديې وي بيا يې هم لولمه اقرأ بها في نفسك يا فارسي .

اوس دا فتوى د چا ده نو داد ابو هريره رضي الله عنه خپل شاګرد له چې اقرأ بها في نفسك يا

فارسي ، امام چې قرائت کوي زه يې لولمه هاو لوله يې في نفسك يا فارسي .

نو د هغې جواب په څو طريقو دي يو دا فتوی د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ده موقوف لا حجة في الموقوفات .

نو اوس د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فتوی په مقابل د فتوی د عبد الله ابن مسعود ، د زيد ابن ثابت ، جابر بن عبد الله ، عبد الله بن مغفل ، عبد الله بن عباس ، عبد الله بن عمر خپله عمرِ فاروق رضوان الله تعالى عليهم اجمعين چې کومې فتوی ما مخکې پيش کړې خپله ګريوان کې سرتيت کړې دده دا فتوی به په مقابل د هغه فتوو کې څومره اهميت ولري .

بله دا چې دغه حديث کې جهر نه دي راغلې زه يې وايمه چې امام يې وايي وايي هاو وايه يې خو په نفس کې وايه دلته د جهر څه ذکر نشته دي د ماسپښين يا د مازديګر لمونځ به وي وايه ورپسې هغه خو خلاف اولى مونږ ګڼو جائز خو يې ګڼو کنه .

د پنجاب يو عالم دلته يو بل عجيبه جواب کوي هغه ورته وايي د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خبره چې : اقرأ بها في نفسك يا فارسي .

وايي ددې دا معنى نه ده چې پټه يې وايه يعنې امام به لګيا وي ته يې پټه لوله وايي دا معنى نه ده هغه مناظر ورته وايي څه معنى يې ده وايي ددې معنى داده چې :

اقرأ بها حين كنت منفرداً . چې کله ځان ته وي نو لوله يې دا يې معنى ده .

هغه وهابي ورته وايي دا معنى د سره په لغتو کې نشته .

اقرأ بها في نفسك . پټه يې لوله دا يې معنى ده هغه ورته وايي وايي د اسم تعريف راته وکړه :

كلمة تدل على معنى في نفسه . ددې څه معنى ده کلمه ده چې دلالت کوي په معنى باندې ، في نفسه ، ددې في نفسه څه معنى ده چې پټه دلالت کوي ښکاره يې نه کوي که ذ في نفسه معنى داده چې : كلمة تدل على معنى منفرداً مستقلاً دلالت په معنى انفراداً کوي او استقلالاً يې کوي .

وايي ددې دا معنى ده چې :

اقرأ بها في نفسك حين كنت مستقلاً ومنفرداً. کله چې ځان ته وي نو لوله يې.
هغه وهابي نه يې لاره ورکه کړې ده.
وايي دا خو اصول دي په احاديثو کې وايي په احاديثو کې هم درته ښودلې شمه؛
من ذكرني في نفسي ذكرت في نفسي. وايي د دې څه معنی ده چې څوک مې پټ یادوي زه يې پټ يادوم دا معنی وايي نه ده.

من ذكرني منفردا ذكرته منفردا. ځکه وروسته پسې راځي:

من ذكرني في ملاء ذكرته في ملاء خير منه.

المقابل د ملاء کې دا راغله چې هر کله دا مقابل د ملاء کې راغله نو دا انفراد دي او هغه جمع ده.

نو من ذكرني في نفسي. دا معنی شده منفرداً ځان ته ما یادوي نو زه به يې ځان ته یاد کړم.

وايي اقرأ بها في نفسك معنی دا چې منفرد يې نو لوله يې دا معنی نه ده چې پټه يې لوله تر آخره پورې وهابي سره څه جواب نه دې پيدا شوي.

نو خلاصه دا چې قرائت خلف الامام جماهير له مونږ سره دي چې په جهري وو کې نه دي کول په کار که سري کې وايي خلاف اولی او که چا ولوستله څه باک نه کوي کراهيت هلته بيا تنزيهي دي په درجه د لا ينبغي کې دي.

## مسئلة قرائت خلف الامام ختمه شوه

